غوره وینا وي

عبدالهادي "همت":

خپل جسم او ذهن دواړه تل فعال ساته!

# طلوع افغان

نبوي مرغلري

رسول الله (ص) فرمایلي دي:

ژباړه: دآزمایښت په وخت کې د الله (ج) عبادت کول، داسې فضیلت لري، لکه زما سره چې یې یو ځای هجرت کړی وي.

﴿رواه المسلم﴾

د امتیاز څښتن:

د کندهار اطلاعات او فرهنګ ریاست

مؤسس: مولوي صالح محمد "هوتک"

په اوونۍ کې دوه واره چاپېږي

د تأسیس کال: ۱۳۰۰ لمریز، چهارشنبه ۱۳/شعبان المعظم/۱۴۴۶هـ ق، ۲۴/سلواغه/ ۱۴۰۳ل کال - ګڼه (۶۹) Issue: 69 Wednesday-12-February-2025

## د بهرنیو چارو وزارت سرپرست: له نړۍ والو سره مثبت تعامل او پر متقابل احترام ولاړو اړیکو هرکلی کوو

د افغانستان اسلامي امارت د بهرنیو چارو وزارت سرپرست مولوي امیر خان متقي د دوشنبې په ورځ په خپل کاري دفتر کې، په کابل کې د ناروې سفارت شارژدافیر پیر البرټ الساس سره کتلي دي.

یاد وزارت د یوې خبرپاڼې په خپرولو سره ویلي، دواړو لورو په دې کتنه کې د سیاسي، اقتصادي او بشري موضوعاتو په اړه خبرې کړې دي.

سرچینې زیاته کړې، د بهرنیو چارو وزارت سرپرست په افغانستان کې د رامنځته سوو فرصتونو یادونه کړې او ویلي یې دي، له نړۍ والو سره مثبت تعامل او پر متقابل احترام د ولاړو اړیکو هرکلی کوي.

د خبرپاڼې د معلوماتو له مخې، د سیمې او نړۍ هیوادونه دې له افغانانو سره د اقتصادي ودې او پراختیایي چارو په برخه کې ښکېلتیا رامنځته کړي.

۴مخ

## یو بند جوړ او یو کانال د جوړېدو چارې پیل سوې دي

د کندهار ولایت په تخته پل ولسوالۍ کې د اوبو د یو بند جوړولو چارې بشپړې او د یاد ولایت په پنجوایي ولسوالۍ کې، د یو کانال د جوړېدو چارې پیل سوې دي.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف

۴مخ

## د ۱۵ میلیونو افغانیو په لګښت د یو سړک پخولو چارې پیل سوې

د هلمند ولایت د مرکز لښکرګاه ښار اړوند، په شپږمه ناحیه کې د څه باندې ۱۵ میلیونو افغانیو په لګښت، د مهاجرینو او مختار معلمینو د دوهم فاز سړک، د پخولو چارې پیل سوې دي.

د لښکرګاه ښاروالۍ د نظارت او ارزیابۍ مدیر محمد عباس

۴مخ

## د لوی محبس څخه ۳۱ تنه زندانیان آزاد سول

د کندهار د لوی محبس څخه ۳۱ تنه زندانیان آزاد او ۱۳۸ تنو ته د بند په موده کې تخفیف ورکړل سوی دی.

د کندهار د لوی محبس مطبوعاتي دفتر ویاند رفیع الله صاحبزاده د دوشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ویلي، د عالیقدر امیرالمؤمنین شیخ صاحب حفظه الله د عفوې او تخفیف د فرمان او د ستري محکمې د حکم پر اساس، د کندهار لوی محبس څخه هغه

۴مخ

## د ۱۲ زره جریبه امارتي ځمکې د غصب مخه ونیول سوه

په کندهار ښار او ولسوالیو کې د تېرې یوې میاشتې په لړ کې، د ۱۲ زره جریبه امارتي ځمکې د غصب مخه نیول سوې ده.

د کرهنې، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل د یکشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ویلي، د یاد ریاست مسئولینو او امنیتي ځواکونو په ګډه همکارۍ، په کندهار ښار

۴مخ

## له پاکستانه ۳۲ مهاجرې کورنۍ هیواد ته راستنې سوې

د کندهار ولایت د تخته پل ولسوالۍ اړوند، په انځرګي کمپ کې، د کډوالو د ثبت او تثبیت کمېټې مسئولینو باختر خبري آژانس ته ویلي، د یکشنبې په ورځ ۳۲ کورنۍ چې د کسانو شمېر یې ۱۷۴ تنه کېدی، خپل هیواد ته راستانه سول.

له یادو کورنیو سره د اسلامي امارت اړوندو ادارو له خوا، نغدي مرسته سوې او هم مرستندویه مؤسسو ته د مرستې له پاره وروپېژندل سوي دي.

## ۴۲۱۱ کېلو ګرامه نشه یي توکي نیول سوي دي

د کندهار د امنیې قوماندانۍ ویاند مولوي اسدالله جمشید ویلي، په ښوراوک ولسوالۍ کې امنیتي ځواکونو، د یو لړ کشفي عملیاتو په نتیجه کې، د همدې ولسوالۍ د پنځمې حوزې اړوند، فرضي کربښې ته څېرمه ۴۲۱۱ کېلو ګرامه نشه یي توکي نیولي دي.

په یادو نشه یي توکو کې ۳۶۷۶ کېلو ګرامه چرس، ۸۵ کېلو

۴مخ

## د مطالبو سرلیکونه


- د مېړو په پوست کې شرموښان (مولوي نورالحق "مظهري")
مدینې منورې ته (محسن احسان)
هوسا ملت او ژمن دولت (م-احسان الله "ثاني")
- د شیطان لښکر
- بروسیلوس (Brucellosis) (محمد سلیم "امیري")
- په فن او کسب کې مهارت (سمیع الله "درانی")
- مادیت او معنویت (بشیر احمد "بشرمل")
- د دیني لیکنې او وینا اثر (نعمت الله "شاکر")


د طلوع افغان خبري (سرلیکنه)

### په کندهار کې کتابونه ډېر؛ خو لوستونکي یې کم دي!

په کندهار ښار کې عامه کتابتونونه او کتاب پلورنځي ډېر سته، اما پر دې هر څه سربېره بیا هم په دې ولایت کې له کتاب لوستلو سره د ځوانانو مینه خورا پیکه ده او دغه پیکه توب ورځ تر بلې زیاتېږي.

له کتابونو سره د علاقې د کمښت، یو لامل د نوي ټکنالوژۍ خصوصًا سمارټ موبایلونو ډېر کارول هم دي.

سمارټ موبایلونه او نوره پرمختللې ټکنالوژي په نوره نړۍ کې د علمي، تحقیقي او نورو ګټورو موخو له پاره کارول کېږي، په یو سمارټ موبایل کې آن میلیونونه کتابونه هم خوندي او لوستل کېدلای سي، خو له بده مرغه زموږ په ټولنه کې بیا مطلق اکثریت د سمارټ موبایلونو او انټرنیټ څخه صرف د تفریح په موخه استفاده کوي.

زموږ د ځوانانو په منځونو کې نن – سبا ټیک ټاک، فېس بوک، یوټیوب اپلیکېشنونه او پبجي ګېمونه دومره عام سوي دي، چې په ساعتونو وخت یې په دې ټکنالوژي کې برباد یږي. د ځوانانو په منځونو کې مجلسونه د ټیک ټاک او پبجي وي.

مخکې د کندهار ځوانان د افغانستان او سیمې په کچه، په علمي برخه کې خورا رسېدلي ول. علامه عبدالحی حبیبي، عبدالشکور رشاد، عبدالروف بېنوا او نوري مخکښه علمي څېرې یې ښه مثالونه دي.

کندهار د تاریخ په اوږدو کې د افغانستان په سیاست، اقتصاد، زراعت، فرهنګ او علم کې خورا ارزښتمن رول ادا کړی دی، خو نن ورځ یې د ځوانانو وضعیت د خورا ډېر افسوس وړ دی!

په کندهار کې عامه کتابتونونه هم ډېر دي او پلورنځي هم ښه پرېمانه دي، خو له بده مرغه د کندهار په دا دونه نفوس کې که محاسبه وسي، څونه کسان چې په یوه ورځ کې، یوه رسټورانټ ته تللي وي، هغوني به د ښار ټولو کتابتونونو او کتاب پلورنځیو ته لاهم نه وي ورغلي.

کندهار د مسئولینو جدي پاملرنه غواړي؛ معارف یې سخت ډېر کار ته اړتیا لري، امید سته چې د اسلامي امارت مسئولین په عموم کې، د لوی کندهار د دې ستونزې د اساسي حل غم وخوري.

اداره

## بېلابېل موضوعات

# د پرېشانيو او عصبي ناآراميو لاملونه څه دي؟

نعمت الله "شاکر"

کوم ضررونه لري او حللاري يې څه دي؟

پرېشاني او عصبي ناآرامي مختلف ډولونه او لاملونه لري.

ځيني پرېشانۍ او عصبي ناآرامۍ د غمونو او تصادفي پېښو له امله رامنځته کېږي.

ځيني عصبي ناآرامۍ د غير مناسبو محيطونو څخه را منځته کېږي.

ځيني پرېشانۍ د وزګارتيا څخه پېښېږي.

ځيني عصبي ناآرامۍ له نامناسبو خلکو سره، د ناستو او اړيکو څخه را پيدا کېږي.

ځيني پرېشانۍ د لوړو خواهشاتو او غير ممکنو هيلو او ارمانونو څخه رامنځته کېږي.

د پرېشانيو ځيني صحي ضررونه:

دانسان عصبي سيستم داسي جوړ دی، چي د انسان د خوښۍ پر وخت، ټولو غړو ته د نورمال فعاليت امر کوي.

نورمال فعاليت دادی چي د انسان ټول غړي د دندو د لايحې مطابق، په سالمه توګه خپل کار کوي. د بدن په هيڅ برخه او فعاليت کي ګډ–وډي نه رامنځته کېږي.

که انسان پرېشان وي، نو عصبي سيستم دانسان د بدن غړو ته د نورمال فعاليت اجازه نه ورکوي، بلکي دفاعي او غبرګوني کمانډونه يې ورکړي وي. په دغسي حالت کي د بدن ځيني غړي خپلي دندي سمي نه سي اجرا کولای او په ځينو سيستمونو کي ګډ–وډي وي، حتی د ويني دوراني سيستم او د هاضمې سيستم هم متأثر وي.

د عصبي سيستم مختلفي برخي غير نورمالي وي، د حافظې، تدبير، سنجش، پلان جوړولو، تعامل او تصميم نيولو چاري منظمي نه وي.

اوسني طب هم پرېشاني د نورو مختلفو ناروغيو سبب بللی دی او د پرېشانيو د مخنيوي مختلفي لاري يې تجويز کړي دي.

يو د دغو وړانديزونو څخه دادی، چي انسان بايد د پرېشانۍ پر وخت، داسي مسکی سي، چي کرغېښي يې يو له بل سره بېل سي. په کرغېښيو کي يو ډول هورمونونه سته، چي د خندا پر وخت، عصبي سيستم ته د نورمال وضعيت اطلاع ورکوي او عصبي سيستم د بدن ټولو غړو ته د نورمال فعاليت حکم کوي.

داسلام له نظره د پرېشانۍ ضررونه:

پرېشاني د اسلامي شريعت له خوا هم منع سوې ده، ځکه د پرېشانيو اصلي عامل اکثره وخت پر الهي تقسيماتو او تقديراتو باندي د اعتراض په معنی وي، چي دا جرم دی.

همداسي عقل هم د دې تقاضا کوي، چي انسان بايد پرېشان نه وي.

ځينو پوهانو د پرېشانيو د مخنيوي دغه لاري وړانديز کړي دي:

د ملګرو او مجلسيانو ليست دي وکتل سي، ممکن داسي کسان در سره ملګري وي، چي د ژوند د کومي برخي سويې مو سره مختلفي وي: (اقتصادي، اجتماعي....)

يا خدای مه کړه داسي ملګری ولرئ، چي هغه ديني يا عرفي محدوديتونو ته متعهد نه وي.... هغه ملګري په ډېر حکمت سره پرېږده!

بله دا چي ممکن داسي هيلي او ارمانونه ولرئ، چي د هغو پوره کېدل، ستاسو په امکاناتو او منابعو ممکن نه وي، نو هغه هيلي له فکره او نظره وباسه!

بله دا چي له دوستانو، کورنۍ او ملګرو سره، منظمي او مناسبي اړيکي مو له پرېشانيو ساتي.

دا چي خوراک، خوب او کار مو له مهالوېش او اړتيا سره سم تنظيم کړئ!

له يوازيوالي ځانونه وژغورئ، ځکه په يوازيوالي کي منفي فکرونه د منفي تصميمونو سبب کېږي.

(له طبي تحقيقاتو څخه ژباړه او له شرعي منابعو)

# د مېږو په پوست کي شرموښان

مولوي نورالحق مظهري

دا هم د مکاري دنيا عارضه او په دنيا کي د نااهلو انسانانو عادت دی چي بد خلک ځانونه د ښو خلکو په جامه کي ښکاره کوي، ګمراه انسانان پر ځانونو ښه نومونه ايږدي او مفسدي ټولني د ځانونو له پاره ښه شعارونه غوره کوي؛ د دې جملې څخه په ملګرو ملتونو کي د "امنيت شورا" نوم دی چي د نړۍ يو څو لنډغر او بدمعاشان سره راټول سوي او دا نوم يې پر ځانونو باندي ايښی دی.

لومړی خپله د ملګرو ملتونو نوم د مسمی او مصداق سره برابر نه دی، ځکه چي په ملګرو ملتونو کي واک او د فيصلې حق يوازي د څو خونخوارو او ظالمو هيوادونو سره دی چي په نړۍ کي يې هره ناروا زړه وغواړي، کوي يې او تل په ملګرو ملتونو کي د مظلوم څخه د دفاع پر ځای، د ظالم پر لکۍ د تشويق او هڅوني تارونه تاوېږي او دې ته هڅول کېږي چي نور هم خپلو ظلمونو ته دوام ورکړي.

د امنيت په نوم خو چي کومه شورا نومول سوې ده، د نړۍ په هيڅ ځای کي يې تر اوسه د امنيت له پاره هڅي نه دي کړي، ځکه د امنيت شورا دائمي غړي د نړۍ تر ټولو بدنام او وحشي هيوادونه دي چي په تاريخ کي له مظلومانو سره د ظلم خورا لويه سابقه لري.

دامنيت شورا دائمي غړي پنځه هيوادونه دي: امريکا، چين، فرانسه، روسيه او بريتانيا، خو په دوی کي ټوله يې بيا د امريکا تر تأثير لاندي دي، ځکه کوم شی چي امريکا يې و نه غواړي، دوی يې نه سي کولای.

که د ملګرو ملتونو او بيا په ملګرو ملتونو کي د امنيت شورا سابقه و څېړو، دا به راته ثابته سي چي دوی په نړۍ کي د ملتونو د دفاع او امنيت له پاره نه دي رامنځ ته سوي، بلکي په نړۍ کي د نړۍوال استکبار ودي، د څو محدودو ظالمو هيوادونو د قدرت غځېدني، د شرقي او غربي کفري بلاکونو بقاء، د کفري هيوادونو له لوري د مظلومو هيوادونو په خاصه توګه، د اسلامي هيوادونو د استعمار او په نړۍ کي د ګډ–وډۍ له پاره رامنځ ته سوي دي چي د دې خبري د ثبوت له پاره په منځنۍ آسيا او منځني ختيځ کي د جګړو او ناآراميو پيدا کول دي او ډېره نژدې بېلګه يې د فلسطين موضوع ده چي همدغي د امنيت شورا اسرائيلو ته مشروعيت ورکړ، هغوی يې په وسلو سمبال کړل، د فلسطين ځمکه يې په لاس ورکړه، قدس يې د اسرائيلو له پاره د پلازمېني په صفت وپېژاندی او دا دی اوس په غزه کي د مظلومو فلسطينيانو پر ضد د غاصبو اسرائيلو مرسته کوي.

دا څنګه د امنيت شورا ده؟ امريکايانو او ملګرو يې د دوی په حضور کي او د دوی په ښکاره يا پټ تأئيد پر افغانستان او عراق بريد وکړ، په سوريه، سوماليا، برما، قفقاز او اېغور کي يې د مسلمانانو نسلونه ووژل، په عربي هيوادونو کي يې د جګړې اور بل کړ او نن يې د غزې پر ورانولو عملي اجماع کړې ده!!!

دا امنيت شورا نه ده، بلکي په نړۍ کي د ناامنۍ او بدمعاشۍ مافيا ده، د وحشيانو او لنډغرو باند دی او د شرموښانو او لاښخورانو رمه ده.

پر دوی باندي هيڅ باور کول نه دي په کار او دوی ته بايد هيڅ با احساسه انسان خوشبين نه وي، د دوی د شر څخه د ځان ساتني له پاره که مدارات ور سره کېږي، کومه خبره په کښې نسته، خو دوی ته د يو منځګړي او سوله غوښتونکي شورا په سترګه کتل، زما په ګمان ناپوهي، غفلت او سرټمبګي ده چي سبب يې د تاريخ څخه ناخبري او ښه او بد نه سره پېژندل دي.

# مديني منورې ته

محسن "احسان"

دلته يو څو ورځي له نبي اکرم صلی الله عليه وسلم سره يم.

نن مي زړه د مينې په اوج کي دی. هغه مينه چي له ماشومتوبه مي په زړه کي وه، نن مي د هغې منزل ته سفر پيل کړ. زه د مديني منورې پر لور يم، هغه ښار چي د رحمت نبي کريم صلی الله عليه وسلم د ژوند ښکلي فصلونه يې رانغاړلي دي.

زه يوازي د يوې ورمې په تعقيب يم، د مينې ورمه، د آرامۍ او سکون ورمه، چي د حرم څخه را الوتلې ده. هر ګام چي اخلم، داسي ښکاري لکه د يو لوی عزت پر لور چي روان يم. په زړه کي مي د بې شمېره ګناهونو بار پروت دی، خو د هغه رحمت به مي په هيلو رڼا کړي.

کله چي سترګي مي د شنې روضې پر ښکلا ولګېږي، زه نه پوهېږم چي به يې د کومو الفاظو په ژبه وستايم. دا هغه ښار دی چي په هره کوڅه کي يې د عشق کيسې دي. زه به هلته په عاجزۍ خپلي باڼو د جارو په څېر پر خاورو کښېږدم، ځکه چي دغه خاوره د ټولي نړۍ تر سرو زرو ارزښتمنه ده.

د روضې په څنګ کي به ناست يم، هغه ځای ته به ګورم چي د رحمت نبي کريم صلی الله عليه وسلم مبارک وجود هلته آرام دی. زما اوښکي به د مينې او عاجزۍ ډالۍ سي او دعا به مي دا وي چي يارسول الله صلی الله عليه وسلم! زه يو بېوسه امتي يم، زما دا سفر قبول کړه او زما د هري ګناه د بخښني شفاعت غواړم.

مدينه هغه ځای دی چي هر څوک ورته د ژوند په وروستيو هيلو کي ځي. د دې سفر هره شېبه د ژوند تر ټولو لويه لاسته راوړنه ده.

اخ؛ ربه! هغه به کوم کيف وي؟

هغه به څنګه شېبې وي، چي زه د شنې روضې تر څنګ ودرېږم؟ اوس مي سترګي د اوښکو له بارانه ډکي دي او زړه مي په بې‌قرار ډول، د مديني پر لور تپېږي. زه يوازي تصور کوم چي هلته به څنګه وي؟ هغه سکون، هغه آرامي او هغه نوراني فضا به څنګه احساسوم؟

اخ؛ ربه! هغه به کوم خوند وي؟

چي د رحمت نبي کريم صلی الله عليه وسلم په سپېڅلي دربار کي به مي دعاوي له هر شک پرته قبلېږي. اوس مي يوازي يادونو ته اوښکي بهېږي، خو هلته به مي اوښکي د رحمت د باران په څېر ښکاري. هلته به د هر ګام په اخيستو سره داسي احساس کوم، لکه زما زړه ته د سکون جنتونه را روان وي.

اوس مي د زړه د مينې او عاجزۍ ډاډګير نه دومره زيات سوې، چي د دې تصور هم ډېر لوی نعمت دی. که اوس مي اوښکي د دې سفر په شوق کي رواني دي، نو هلته به مي ژوند په مطلق آرام او نور بدل وي.

يا الله! ته مي د دې شوق لوی ارمان ته ورسوه، هغه کيف او هغه خوند په حقيقت کي را نصيب کړه چي زه يې اوس يوازي په خيال کي احساسوم!

# هوسا ملت او ژمن دولت

م احسان الله "ثاني"

له کندهاره سپين بولدک ته پر لار و، د سفر په اوږدو کي د سړک پر غاړه د عامو هيوادوالو موټر ولاړ و، يو ځوان لاس را اوږد کړ، چي ورته ودرېدلو، تر سترګي مسي وروسته يې په زهيره لهجه وويل: مجاهدينو وروڼو! موټر مو تېل خلاص کړي او زنانه ناروغان هم راسره دي، د تېلو تر پمپ پوري به همکاري نه را سره وکړئ؟

موږ په خورا مينه او ورين تندي ور غبرګه کړه، ولي نه! زموږ خواساسي دنده ستاسو خدمت او چوپړ دی، ملګری په ځغلنده ور کښېته سو او د هيوادوالو موټر يې په خپل نظامي موټر پوري کېبل کړ او د تېلو تر پمپ پوري چي ښه ليري و، په کرار – کرار را ورساوه.

لله الحمد نور زموږ مظلوم ولس له هغه حالته خلاص سوی چي د نظامي موټر په ليدو به يې ساه لنډه – لنډه کېدله او د خپل سر، مال پت او عزت ساتلو ته به حيران پاته و، پر کړېدلو افغانانو تر څلورو لسيزو ناخوالو وروسته، دا امن، سوله، خوشحالي او سوکالي راغلې او د دوی له بطن را ټوکېدلی طالب جان ور باندي حکومت کوي.



# د شیطان لښکر

خوښونه: شهید شیخ رحیم الله "حقاني"

(۱۰۶) برخه

## د خوارجو نوې څېره (داعش)

دوهم سبب:

جواز او عدم جواز ته تر تلو مخکې باید دې خبرې ته پام وسي، چې په اوسني وخت کې د تش په نامه اسلامي هیوادونو کې د مسلمانانو څه حال دی؟ هغه حالت هم له یو خالص کفري هیواد څخه کم نه دی.

یو مسلمان ته هم په آزادان توګه د خپل دین د حقیقي تعبیر او تصویر اجازه نسته، که که چا داسي وکړل، نو هغه به خامخا یا په شهادت رسول کېږي. یا به یې په پښو کې زولنې پرتې وي.

باید دا خبره د ذهن څخه وایستل سي، چې د نړۍ په کومو هیوادونو کې جمهوري نظام نافذ دی، د هغو ټولو احکامات یو شی دي، هغه که مغربي جمهوریت دی او که مشرقي. شخصي آزادي په ټولو هیوادونو یو شان ده، دلته دا توپیر بې ګټې دی، چې فلاکسی اسلامي ملک دی او فلانکی کفري، ځکه چې د دارالاسلام په مقابل کې یوازې دارالکفر دی، چیري چې اسلامي احکام نافذ وي، هغه دارالاسلام دی او چیري چې د اسلامي احکامو پر ځای سوشلیزم، نېشنلیزم، کاپیټلیزم یا جمهوریت نافذ وي، هغه ته په هیڅ صورت دارالاسلام نه سو ویلای او څوک یې چې دارالاسلام او څوک چې یې دارالاسلام ګڼي، یا په ناپوه وی او یا به درباري ملا وي.

دریم سبب:

که په کفري هیوادونو کې د قیام عدم جواز او هلته د مقیمو اشخاصو لزوم هجرت در سره ومنو، نو ټول غیر اسلامي هیوادونه به له اسلام او مسلمانانو څخه خالي سي، لږ تر لږه په اوسني وخت کې کوم هوښیار دا خبره نه سي کولای، سربېره پر دې هلته مېشتو مسلمانانو ته په هجرت کې ډېري ستونزي متوجې دي، که بیا هم موږ دوی هجرت ته اړ باسو، نو دا د اسلامي د مزاج خلاف دی.

الله جل جلاله د قرآنکریم د سورة الحج په (۷۸) نمبر آیت کې فرمایي:

ژباړه: او پر تاسو باندي یې په دین کي څه تنګي نه ده راوستلې.

او بل ځای د سورة البقرې په (۱۸۵) نمبر آیت کي فرمایي:

ژباړه: الله تعالی پر تاسو اساني غواړي او پر تاسو سختي نه غواړي.

یادونه: دا پورتنی تفصیل د دارالاسلام او دارالحرب په اړه دی.

ځینو خلکو یو بل قسم هم بیان کړ دی:

دارالمسلمین یعني هغه ځای چې هلته مسلمان اکثریت او زیات وي، خو دا تقسیم بې بنیاده دی.

علامه یوسف لدهیانوي رحمه الله یوازې دوه ډولونه ذکر کړي دي او د همدوی یې لنډ تعریف داسي کړی دي:

چیري چې اسلامي احکام نافذ کېږي، هغه دارالاسلام دی او چیري چې کفري او وضعي قوانین نافذ کېږي، هغه دارالحرب او دارالکفر دی او دا خبره هم په ذهن کې باید په یاد ولرو، چې د اسلامي نظام په مقابل کې هر نظام راغی، هغه به کفري وي.

### د خوارجو ډلې

د خوارجو اته لویې ډلې دي:

۱–المحکمة

۲–الازارقه

۳–النجدات

۴–البیهسیة

۵–العجاردة

۶–الثعالبة

۷–الاباضیة

۸–الصفریة

په دې اتو ډلو کې هره ډله ځان ته عقاید لري او هره ډله خپلي څانګې لري، موږ به یې دلته په لنډه توګه د هري ډلې پېژندنه وکړو، زیات تفصیل موږ د علامه شهرستاني له کتاب: الملل والنحل څخه اخیستی دی.

لومړۍ ډله: المحکمة:

دا هغه خوارج دي چې د سیدنا علي رضي الله عنه پر خلاف یې دا ناره پورته کړې وه:

"ان الحکم الا لله" دا هغه وخت و چې سیدنا علي او سیدنا معاویه رضی الله عنهما د خپل منځي اختلافونو د له منځه وړلو له پاره ابو موسی الاشعري او عمرو بن العاص رضي الله عنهما حکم یعني دربیمګړي ټاکلي وو، تر دې وروسته دوولس زره کسانو د کوفې څخه خروج وکړ او د حروراء په سیمه کې یې پړاو واچاوه.

نور بیا...

# بروسیلوس (Brucellosis)

محمد سلیم "امیري"

بروسیلوس (Brucellosis) چې په پښتو کې ورته "د مال تبه" یا د بروسیلا ناروغي ویل کېږي. یوه ساري ناروغي ده چې د بروسیلا په نامه باکتریاوو له لاري رامنځته کېږي. دا ناروغي اکثره د حیواناتو څخه انسانانو ته لېږ کېږي او په ځانګړي ډول، په اهلي حیواناتو، لکه: غواګانو، وزو، پسونو او اوښانو کې ډېره عامه ده.

د ناروغۍ لاملونه:

دا ناروغي په لاندي طریقو خپرېږي:

۱– د خامو شیدو یا ناپاسچر سوو لبنیاتو خوړل.

۲– له ککړو حیواناتو یا د هغوی له فاضله موادو سره مستقیم تماس.

۳– په فارم یا دامدارۍ کې د ککړو ذراتو تنفس کول.

په انسانانو کي نښې – نښانې:

تبه (چې ځیني وختونه په مکرره بڼه، یا د بیا بیا راتګ تبه وي).

زیاته خوله کول.

د وجود کمزوري او ستړیا.

د بندونو او عضلاتو درد.

د وزن کمېدل.

په حیواناتو کي نښي – نښانې:

سقط جنین (په ځانګړي ډول د امیدوارۍ په وروستیو درو میاشتو کي).

شنډوالی یا د بچو نه پیدا کېدل.

د شیدو تولید کمېدل.

د بندونو التهاب.

د مخنیوي او درملني لاري:

۲– په انسانانو کي:

د خامو شیدو یا ناپاستوریز سوو لبنیاتو نه خوړل.

له حیواناتو سره په تماس کي د دست کشو نه کارول.

د ډاکټر په مشوره ځانګړي انتي بیوټیکونه لکه داکسي سایکلین او ریفامپین کارول.

۱– په حیواناتو کي:

د واکسینیشن تطبیق.

په فارم کي د حفظالصحې اصول مراعاتول.

دا ناروغي جدي ده او که درملنه یې و نه سي، د اوږدمهاله ستونزو لامل کېدای سي. که په خپلو حیواناتو یا ځان کي دا نښې ووینی، نو ژر تر ژره له ډاکټر یا وترنر سره اړیکه ونیسئ!

درنو مالدارانو! د بروسیلوس ناروغي جدي ونیسئ، خدای مه کړه انسانانو ته جدي خطر مواجه نه سي.

# په فن او کسب کي مهارت

ژباړه: سمیع الله "دراني"

د هر کس له پاره دا ضروري ده، چې په کسب او فن کي مهارت ولري. کوم چې دغه کس په هغه کسب او فن باندي اقتصاد ساتي، ځکه که یو څوک په خپل کسب کي مهارت نه لري، بیا د خپلو هم کسبو په نظر کي سپک راځي او بل نه مهارت د انسان په پرمختګ کي خنډ جوړېږي، نو که تاسو غواړی او کسب زده کړی. دغه کسب ته به تاسو فطرتي میلان هم لری، ځکه میلان تاسو په مهارت کي رسوي. له خلکو سره مشورې وکړئ، کتابونه مطالعه کړئ، د شرم احساس مه کوئ!

# مادیت او معنویت

بشیر احمد "بشر مل"

مادیت او معنویت د انساني ژوند، هغه دوه مهم اصلونه او اړتیاوي دي، چې یو په بل سره پوره کېږي، لکه: بدن چې د روح او روح د بدن له پاره لازم او ملزوم دي.

د ژوند ټول وسایل او امکانات چې موږ یې وینو او استفاده کوو، لکه: خوراک، څښاک، پوښاک، موټر، ټیلیفون او نور. دا مادیات دي او بې له دغو ژوند ناممکن دی چې کله دا مادیات نه وي، نو موږ به بیا څنګه او څه ډول د خپل خالق، عبادت کوو، همدا مادیات دي چې موږ د معنویاتو له پاره قوي او محکم کوي.

# د دیني لیکني او وینا اثر

نعمت الله "شاکر"

د دیني لیکني او وینا اثر، د لیکوال او ویناوال له نیت او شخصیت سره مستقیم تړاو لري.

ځیني کتابونه او ویناوي خورا دقیقي او منظمي ترتیب او تقدیم سوي وي، خو د لیکوال او ویناوال نیت یا شخصیت جریحه داره وي، نو هغه لیکنه او وینا مثبت اثر نه لري.

ځیني لیکني او ویناوي دقیقي او منظمي نه وي، خو مثبت اثرات یې تر توقع زیات وي، ځکه لیکوال او ویناوال ښه نیت یا ښه شخصیت لري.

یادونه: که څه وایاست او یا یې لیکی، نو خپل نیت حاضر کړی، ښه فکر وکړی، چې له وینا او لیکني څخه مو اساسي هدفونه څه دي؟ که مو هدفونه سره ګډ–وډ ول، نو د نیت صفا کېدو او اخلاص کوښښ وکړئ! که نیت نه سمېدی، نو وینا او لیکنه مو ودرېږئ!

شعر او آدب

# د طلوع زریني وړانګي

### پرېنمځئ

وصال خوشامندوال

د خدای په ذکر مو نور زړه له ګناهو پرېمنځئ!
محبت راوړئ او نفرت مو نور له زړو پرېمنځئ!

خپلي یو نیم سل غلطیاني دي هغه اصلاح کړه!
ضرورت نسته چي نور خلک له عیبو پرېمنځئ

هو! دا منو چي سپین کالي یو ټف له لیري بریښي
خو دومره خیرن نه یو چي تل مو په شامپو پرېمنځئ

چي ستا عیبونه لټوي او دا ستا سپکه غواړي
له ملګرتیا څخه لاسونه د هغو پرېمنځئ!

تندي مو خدای ته لګوئ په عاجزي او عجز
دا ځان ښوونه او ریا مو له سجدو پرېمنځئ!

دغه پاکوالی راته ښکاري بې معنی پاکوالی
په زړه خیرن یاست او مخونه په اوبو پرېمنځئ

خدای به مو وبخښي طالب "خوشامندوال وصاله!"
عمل نامي په استغفار او په توبو پرېمنځئ

### غزل

امیر حسن "نوري"

که پاڼي پاڼي یې تنکي ګلونه راوړل
هغه موسم تر بهار مخکي خزانونه راوړل

راتله نخرو باندي یې رنګ رنګ قدمونه راوړل
موږ یې د غاړي هار ته څومره ډېر سرونه راوړل

زموږ ایرې خو یې رانجه سولې د ښکلو سترګو
په هره بیه مو د ناوي، سینګارونه راوړل

زموږ یقین و چي په مفته پیدا کېږي هیڅ نه!
وخت به نو خود په موږه غټ غټ تاوانونه راوړل

څه په سلګیو او آهونو به مو وپوښلې
شپو به د خوب پر ځای له ځان سره غمونه راوړل

زموږ فکرونه فطرتي پر آزادۍ مین دي
"نوري!" ناکام سول هغه چا چي ځنځیرونه راوړل

### غزل

چنار ټکور

یاره حسن دي له هر نصابه زیات ده
غریبان یو ګوزاره مو په زکات ده

کله کېږي چي وچ بوټی ثمر وکړي
تا په څنګ پوري نیولی ډیموکرات ده

زه د نورو غوندي نه یم ذوق مي بېل ده
د غزني یمه خو ګران راته قلات ده

که په کلي کي عسکر یم که په ښار کي
د تن وینه مي وطن لره خیرات ده

د پټکي خاونده رب دي جنتي کا
دلته مخکي سېنما وه اوس جومات ده

د "ټکور" یې مړاوي هیلي راژوندۍ کړي
نوش جان یې د وطن آب حیات ده

مســـــئول مـــدیر: ـــــــ بـریـالـــی "فیـضي"
د تصـحیح مسئـــول: ـــــــ حاجي عبدالله "ذاکري"
کمــپوز او ډیــــزاین: ـــــــ نصیر احمـد "صـــابر"
د مـــــدیریت شمیره: ـــــــ ۰۷۰۵۶۰۸۶۷۳
د توزیع مدیریت شمیره: ـــــــ ۰۷۰۰۴۹۱۴۳۶
پتــه: ـــــــ علامه حبیبي واټ –اطلاعات او فرهنګ ریاست
د برېښنالیک پته: ـــــــ Afghan.tolo@yahoo.com

## د ګڼون کوونکو له پاره خبرتیا!

د طلوع افغان تاریخي خپرونه چې د هیواد په مطبوعاتي تاریخ کې ځانګړی ځای لري. که غواړئ چې د لمریز کال په آخرکې د طلوع افغان تاریخي ورځپاڼي یو بشپړ کلکسیون ولرئ، نو په طلوع افغان ورځپاڼه کې ګډون وکړئ.

د ګـډون کلنی بیـه ۵۰۰- پنځـه سـوه افغـانۍ، زده کوونکـو او محصلینو ته د تصدیق په وړاندي کولو سره نیمه بیه ټاکل سوې ده.

اداره

# Tolo E Afghan

Journal

طلوع افغان مدیریت له ټاکلي لیکنیز معیار سره سم، دلیکنو په اصلاح کې د لاسوهني حق لري.

ګرانو لوستونکو! په ډېر احترام هیله کېږي، چي دا سپېڅلې پاڼې بې ځایه و نه غورځوئ!

Founded in 1921 ISSue: 69 Established in 1300 Hijri


## اعلانونه او خبرتیاوي



**(۱) مخ پاته: دبهرنیو چارووزارت...**

په ورته وخت کي په کابل کي د ناروې شارژدافیر د افغانستان امنیتي وضعیت ښه او له نشه یي توکو سره د افغان حکومت مبارزه ګټوره بللې ده.

هغه ډاډورکړی، چي ناروې به له افغانستان سره خپلې ښکېلتیا ته دوام ورکوي او فعالیتونه به یې ادامه پیدا کوي.

د یادوني وړ ده، چي د دواړو هیوادونو ترمنځ، د مثبت تعامل پر اړتیا خبري سوي او د دواړو هیوادونو ترمنځ، د ډیپلوماتیکو اړیکو لا پراختیا ته هیله مندي ښوول سوې ده.

**(۱) مخ پاته: یوبندجوړ او یو کانال...**

حقمل د یکشنبې په ورځ باختر خبري آژانس ته ویلي، د اسلامي امارت په ځانګړې بودجه، د تخته پل ولسوالۍ د اقاخېلو په سیمه کي د اوبو د یو بند جوړولو چاري بشپړي سوي دي.

د اوبو یاد بند ۱۰۴ متره اوږدوالی او ۵,۵ متره لوړوالی لري، چي چاري یې د ۲,۷ میلیونو افغانیو په ارزښت په روانه اوونۍ کي بشپړي سوي دي.

د بل خبر له مخي د کندهار ولایت په پنجوایي ولسوالۍ کي، د یو کانال د جوړېدو چاري پیل سوي دي.

د کرهڼي، اوبو لګولو او مالدارۍ ریاست ویاند محمد حنیف حقمل ویلي، د دوی په پراختیایي بودجه، د پنجوایي ولسوالۍ د بدوان په سیمه کي د ۳,۸ میلیونو افغانیو په ارزښت، د اوبو رسولو کانال جوړېدو چاري پیل سوي دي.

دغه کانال به ۲۶۵ متره اوږدوالی، ۱,۵ متره پراخوالی او درې متره جګوالی ولري، چي چاري به یې د دوو میاشتو په موده کي بشپړي سي.

**(۱) مخ پاته: د ۱۵ میلیونو افغانیو...**

ځیرک باختر اطلاعاتي آژانس ته ویلي، دغه سړک د ښاروالۍ ریاست د انکشافي بودجې څخه د ۱۵ میلیونو ۳۸۶ زره ۹۰۴ افغانیو په لګښت، د ۱۳۰۰ متره په اوږدوالي او د ۸ متره په سور سره، د مهاجرینو او مختار معلمینو د دوهم فاز سړک د پخولو چاري پیل سوي دي.

د هغه په خبره، د یاد سړک د درېیم فاز چاري به هم ډېر ژر پیل سي.

د سیمي اوسېدونکو د یادي پروژې په پلي کېدو خوښي ښوولې او ویلي یې دي، د دې سړک په جوړېدو سره به یې د تګ او راتګ ستونزي حل او په ترانسپورتي برخه کي به ورته ګڼې اسانتیاوي برابري سي.

**(۱) مخ پاته: دلوی محبس څخه...**

زندانیان چي په دیني او عصري زده کړو کي ښه ځلېدلي وو، له جملې یې ۳۱ تنه آزاد او ۱۳۸ تنو ته د بند په موده کي تخفیف ورکړل سوی دی.

د یاد زندان رئیس مولوي محب الله ګرمسېري آزاد سوو زندانیانو ته مبارکي وویله او له هغوی یې وغوښتل چي د اسلامي شریعت او افغاني ټولني د اصولو خلاف عملونو څخه ډډه وکړي او په زندان کي د ورکړل سوو زده کړو او روزنو له لاري دي، خپلي کورنۍ او هیواد ته خدمت وکړئ.

**(۱) مخ پاته: د ۲ ازره جریبه امارتي...**

او ۱۹ ولسوالیو کي د ۱۲ زره جریبه امارتي مځکي د غصب مخنیوی کړی دی.

د حقمل په وینا، د کرهڼي ریاست اړوند، د غصب سوو مځکو د راګرځولو او د مځکو د تشخیص او تثبیت تخنیکي هئیت د تېري یوې میاشتي په اوږدو کي د ۸۶ زره او ۳۹۶ جریبه مځکو دوسیې بررسي کړي، چي د ۱۱ زره او ۹۵۱ جریبه امارتي مځکه په کښې تشخیص او تثبیت سوې او د یادو مسئولینو له لوري یې د غصب مخه نیول سوې ده.

**(۱) مخ پاته: ۴۲۱۱ کیلوګرامه نشه...**

ګرامه تریاک او ۴۵۰ کیلو ګرامه ایف شامل دي.

یاد نشه یي توکي د پاکستان څخه په قاچاقي ډول را اړول سوي ول، چي د امنیتي ځواکونو له لوري و نیول سول.

د یادوني وړ ده، چي قاچاقبران یې د سیمي څخه تښتېدلي دي.

## حماس د اسرائیلي یرغمل سوو خوشي کېدل ځنډولي



د حماس جهادي اسلامي غورځنګ مطبوعاتي څانګي اعلان کړی چي د پاته اسرائیلي یرغمل سوو کسانو خوشي کېدل یې تر بلي خبرتیا پوري ځنډولي دي.

حماس ویلي، هغه اسرائیلي یرغمل چي ټاکل سوې وه، د راتلونکي شنبې په ورځ (۱۵ فبروري) د اوربند د هوکړي له مخي خوشي، د اسرائیلو له خوا د "تړون له هوکړي د سرغړوني" له کبله، د مخکني پلان له مخي نه آزادېږي.

حماس د اسرائیلو پر پوځ تور لګولی چي غزې ته د بشري مرستو د ورتګ مخه نیسي او د غزې شمال ته د فلسطیني کډوالو بیرته ستنېدل ځنډوي.

د اسرائیلو د دفاع وزیر اسرائیل کاټز حماس د اوربند له هوکړي په سرغړوني تورن کړی او پوځ ته یې امر کړی چي په غزه کي د هر ډول احتمالي حالت له پاره پوره چمتووالي ونیسي او له اسرائیلي ټولنو دفاع ته آماده اوسي.

د حماس د پوځي څانګي عزالدین القسام کنډک ویاند ابو عبیده ویلي: "د جنورۍ پر ۱۹مه (شاوخوا درې اوونۍ وړاندي) د اوربند د تړون له پلي کېدو راهیسي، اسرائیلو د غزې شمال ته د فلسطینیانو بیرته ستنیدل ځنډولي، د غزې اوسېدونکي یې په توپونو او مرمیو په نښه کړي او دې سیمي ته د ورتلونکو بشري مرستو مخه یې نیولې ده."

د اسرائیلو او حماس ترمنځ د اوربند تړون، په تېرو درو اوونیو کي په پراخه کچه پلي سوی، که څه هم داسي پېښې رامنځته سوي چي فلسطینیان د اسرائیلي ځواکونو د ټکانو په پایله کي شهیدان سوي دي.

مرستندویه سازمانونه دا هم ویلي، غزې ته د بشري مرستو لېږد زیات سوی دی، خو حماس بیا اسرائیل د اوربند په ماتولو تورنوي.

ابو عبیده ویلي: "د بندیانو (اسرائیلي یرغمل سوو) خوشي کول، چي ټاکل سوې وه، د شنبې په ورځ، د روان کال د فبرورۍ پر ۱۵ نېټه تر سره سي، تر بلي خبرتیا پوري ځنډول سوي. ترڅو چي اشغالګر خپلې هغه ژمنې پوره نه کړي چي په تېرو څو اوونیو کي نه دي پوره سوي."

د یرغمل سوو کورنیو غبرګون:

د اسرائیلو د لومړي وزیر دفتر په یو بیان کي ویلي: "د حماس اعلان د یرغمل سوو کورنیو ته رسول سوی دی."

په بیان کي راغلي، "کورنیو ته خبر ورکړل سوی چي اسرائیل د تړون درناوي ته ژمن دی او د تړون هر ډول سرغړوني به په خورا جدي توګه تعقیب کړي."

د یرغمل سوو کورنیو ټولني ویلي، دوی پر منځګړیو هیوادونو ږغ کوي چي "د اوسني تړون بیا ژوندي کولو او په اغېزمنه توګه د پلي کولو په برخه کي مرسته وکړي."

په ورته وخت کي، (دوشنبه، د فبروري ۱۰مه) په تل ابیب کي د اسرائیلي یرغمل سوي الون اوهېل د ۲۴مي کالیزي د لمانځلو په موخه یوه غونډه جوړه سوې وه. همدلته لاریون کوونکو په غزه کي د پاته یرغمل سوو کسانو د خوشي کېدو غوښتنه کوله.

حماس د ۲۰۲۳ مېلادي کال د اکتوبر پر ۷ مه، د نووا موسیقۍ پر فستیوال د برید پر مهال، الون اوهېل یرغمل کړی و.

د اسرائیلو او حماس ترمنځ، د اوربند له پلي کېدو راهیسي، د اسرائیلو له زندانونو د سوونو فلسطیني بندیانو په بدل کي ۱۶ اسرائیلي یرغمل خوشي سوي دي.

پنځه تایلنډي یرغمل هم د حماس او اسرائیلو د اوربند د تړون له چوکاټه بهر آزاد سوي دي.

د حماس او اسرائیلو د اوربند د تړون له مخي، چي د جنورۍ پر ۱۹مه پلي سو، تمه کېږي چي د تړون د لومړي پړاو د ۴۲ ورځو مودې تر پایه ۱۷ نور یرغمل سوي کسان هم خوشي سي.

## ټولنیزي رسنۍ

**Nisar Samad Wasifi:**

مهم اصل:

هر څومره چي لږ خبري کوې؛ هغومره دي عزت ساتې!

**Masood Afghan:**

بریا په چورتونو او فکرونو نه ترلاسه کېږي، کار او حرکت غواړي.

**Qarib Aryan:**

یو وخت ژوند ساده و. په کمو شیانو اکتفا، لږ اړتیاوي او فکري آرامتیا د ساده ژوند سمبول و، خو نن ورځ یوه سخته ننګونه بلل کېږي. د ټکنالوژۍ چټک پرمختګ، ټولنیزي رسنۍ او د ډېر مصرف کولو کلتور خلکو ته دا ذهنیت ورکړی چي تل بوخت واوسي، نوي شیان واخلي او د نورو ژوند وڅاري چي دې ټولو مواردو د ساده ژوند مخه نیولې. اقتصادي فشارونه هم د دې مسئلې له پاره یو خنډ دی، ځکه چي د لګښتونو لوړوالی او د مالي امنیت نه شتون، خلک دې ته اړ کوي چي زیات کار وکړي او له ساده ژوند کولو یې وباسي. په اوسني وخت کي ساده ژوند کول ستونزمن دی، خو که هوښیار تصمیم ونیول سي، له غیر ضروري مصروفیتونو ځان وساتل سي، اړتیاوي او توقعات کم سي او د ټولنیزو فشارونو پر ځای، پر اصلي ارزښتونو تمرکز وسي، نو لا هم د ساده ژوند کولو امکانات سته. تاسو څه وایاست؟

**استاد عبدالغفار "ولي":**

د خپلو اولادونو کوچنۍ-کوچنۍ غوښتني حتمًا پوره کوئ، ځکه دا یې پر جرئت، درسونو او فکري وده کي مثبت اغېز لري.

د دوی ډېري غوښتني که څه هم مونږ ته بې ارزښته معلومېږي، مګر پوره کول یې ډېر مهم دي.

**محمد علیم "بسمل":**

هغه مېندي او پلرونه چي پر خپلو اولادونو له ډېري میني هیڅ امر او حکم نه کوي، فطري طاعت او تربیه یې خرابوي، ځکه چي اطاعت او سرغړونه داسي دي لکه د یوا و بل ځای ناستي چي اطاعت نه وي، نو سرغړونه به وي او چي کله نا کله حکم وربا ندي کوي، نو بې اطاعته کېږي به نه.

هغه ځوانان چي سره له علمه بې لارې او د مور و پلار نافرمانه دي، لامل یې همدغه ډېر ناز دی، چي حتی دومره هم نه ورته وایي چي یوه پیاله اوبه را کړه!

البته! دا بېله خبره ده چي ډېر حکم ښه عادت نه دی.

یادونه: مشر ورور ته هم بویه چي کله کله د اطاعت دروږد کولو په نیت پر کشرانو حکم کوي.

**Yasin Saadat:**

امریکایي لیکوال بریهام لیان ویلي:

د معاش مسیج؛ د محبوبي تر سلو مسیجونو غوره او بهتر دی!